# پښتو

## د زده کوونکو د کار کتاب

## دویم ټولګی (دویمه نیمایي)

دعا

دا زموږ مدعا ده

دا زموږ ټولو دعا ده

خدایه پاکه! موږ لوی کړې — په هر څه باندې مو پوی کړې

علم، پوهه، عقل راکړې — ذهن، زړه زموږ رڼا کړې

هر مشکل زموږ اسان کړې — موږ د غم نه په امان کړې

موږ لوی داسې الله کړې — چې په کار مو د هرچا کړې

د اسمان کړې موږ ستوري — چې ټول خلک راته ګوري

موږ د دین په لار روان کړې

موږ صحیح مسلمانان کړې





WB P-2 31-60
Revised Version
B.E.F.A.RE 1991

د زده کوونکي نوم:

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# پښتو

## د زده کوونکو د کار کتاب

## دويم ټولګی (دويمه نيمايي)

دا د کار کتاب د ښوونکي هغه لارښود سره ارتباط لري چې پ۲-۳۱ څخه ترپ۲ - ۶۰ پورې درسي پلانونه په برکښې نيسي


چاپ کوونکی: پرنٹنگ کارپوريشن آف فرنٹير لميٹڈ پېښور

۱۹۹۱- پېښور

# زمونږه پیغمبر(ص)

دنیا کښې د هر چانه دی اوچت او معتبر

زمونږه پیغمبر(ص)

(۱) پیدا شو په مکه کښې روضه یې ده مدینه کښې



لري نوم محمد(ص) داسې روښانه لکه لمر

زمونږه پیغمبر(ص)

(۲) ریښتونی په ریښتیا وو په زړه باندې صفا وو

کارونه ښه کول به همېشه کور او بهر

زمونږه پیغمبر(ص)

(۳) نازل پرې خدای قرآن کړو خبر یې هر انسان کړو

پیغام دی رسولی هر انسان ته برابر

زمونږه پیغمبر(ص)

(۴) ډېر خوښ یې ماشومان وو په ده باندې ډېر ګران وو



لرله ورسره به دومره مینه لکه غر

زمونږه پیغمبر(ص)



(۵) هم تاسو یې صفت کړئ ثنا یې هر ساعت کړئ

مدد به کوي ستاسو په هر حال کښې بختور

زمونږه پیغمبر(ص)

پ ۲ | ۳۱ - ۲

مکه مدینه نازل روضه

محمدؐ معتبر

# زمونږ پیغمبرؐ

ثنا قرآن رښتونی

پیغام

حضرت محمد صلی الله علیه و اله وسلم

۱ـ زمونږ د پیغمبرؐ نوم ________ دی .

۲ـ زمونږ پیغمبرؐ په ________ کښې پیدا شوی دی .

۳ـ زمونږ د پیغمبرؐ روضه په ________ کښې ده .

۴ـ زمونږ په پیغمبرؐ ________ نازل شوی دی .

پ ۲ | ۳۱ - ۳

عبدالله - هجرت - امنه - نازل - خدیجه

څلوېښت - ابوطالب - درې شپېته - عبدالمطلب

## زمونږ د پیغمبرؐ ژوند

د حضرت محمدؐ پلار ________ او مور یې ________ وه .

د دوی د تره نوم ________ او د نیکه نوم ________ وو .

زمونږ د پیغمبرؐ د بي بي نوم ________ وو .

دوی د مکې نه مدینې ته ________ کړې وو .

د نبوت په وخت د رسول پاکؐ عمر ________ کاله وو .

قرآن په حضرت محمدؐ ________ شوی دی .

د وفات په وخت د دوی عمر ________ کاله وو .

# د لوبیا بوټی







| |
|---|
| تخم |
| تېغ |
| جرړې |
| پاڼې |
| ګل |
| میوه |
| ډنډر |
| خاوره |
| اوبه |
| هوا |
| لمر |

| پ ۲ | ۳۲ - ۲ |
|---|---|



# ونې او بوټي

وني غټه وي او تنه لري. بوټي وړوکي وي او ډنډر لري.
ونې پاڼې او جرړې لري. بوټي هم پاڼې او جرړې لري.
ځينې ونې مېوه کوي. ځينې بوټي هم مېوه کوي.
د ونې عمر زيات وي. ځينې بوټي د يو موسم د پاره وي.
خلک د ونو پاڼې او جرړې نه خوري. خلک د ځينو بوټو پاڼې او جرړې خوري.
ټولو ونو او بوټو د پاره خاوره، اوبه، لمر او هوا په کار ده.

| پ ۲ | ۳۲ - ۳ |
|---|---|

## بوټي او خوراک

موږ د بوټو تخم، مېوه، پاڼې، ډنډر او جرړې خورو.

| موږ خورو | | موږ خورو | |
|---|---|---|---|
| ګازره | | ګنې | |
| غنم | | رومي بانجان | |
| ټېپر | | زردالو | |
| سابه | | جوار | |
| انګور | | ګوپي | |

د يو نا اشنا بوټي نه څه مه خورئ!
ځينې بوټي د بنيادمو د پاره زهرناک وي.

| پ۲ | ۳۳ - ۱ |
|---|---|

## د توت ونه



| | | |
|---|---|---|
| ۱ توتان | ۴ د کټ پښې | ۶ لاس ګاډی |
| ۲ ټوکری | ۵ سوری | ۷ د هاکي سټېک |
| ۳ د ګډو او بزو خوراک | | ۸ د وربښمو د چنجو خوراک |

| پ ۲ | ۳۳ - ۲ |
|---|---|

## د توت ونه ډېرې فایدې لري

د توت مېوه خوږه او د هر چا خوښه وي .

د وربښمو چنجي د توت پاڼې خوري .

ګډې او بزې هم د توت پاڼې خوري .

د توت د څانګو نه ټوکری جوړېږي .

د توت لرګی ډېرو شیانو کښې په کار راځي .

خلک د توت لاندې سوري ته کښېني .

ونې د الله پاک پیدایښت دی ـــ د ټولو ونو ساتنه په کار ده .



# سليم وايي

زمونږ په کور کښې د توت يوه ښايسته
ونه ده . دا زما ډېره خوښه ده . ما د دې
په يوه څانګه کښې ټال اچولی دی .
زه خپلو ملګرو سره په دې زانګم .
په اوړي کښې زه د دې د لاندې لوبې کوم.
چې ستړی شم نو غرمه د دې د سورې
لاندې په کټ خملم . په دې ونه کښې ښايسته
مرغان هم کښيني . زمونږ په توت کښې د يوې ښارو ځاله
هم ده چې په کښې يې هګۍ اچولې دي . څو ورځې
پس به بچي راوړي . زما د ښارو بچي ډېر خوښ دي.
زمونږ پيشو چې کله سپی ووينې نو توت ته ترې
وخيژي او په څانګه يې کښيني .
په سپرلي کښې چې زمونږ توت پاڼې وکړي نو زه
ډېر خوشحاله شم ځکه چې په اوړي کښې به دا
ميوه نيسي او زه به يې څانګې ښندم او نوتان
به يې خورم . ملګرو ته به يې هم ورکوم .
دا توتان ډېر خواږه دي . کله کله چې ماښام زمونږ
ګډې بزې د پټو نه راشي نو زه د دې پاڼې راشکوم
او ګډو بزو ته يې اچوم .
دا پاڼې د دوی ډېرې خوښې دي .
زمونږ ټوکره چې وشليږي نو مور مې د دې توت
ورې څانګې را پرې کوي او دا پرې جوړوي .

ايا تاسو کره هم د توت ونه شته ؟











پ۲ | ۳۴ - ۲

# بوډا او باچا

| | |
|---|---|
| باچا د بوډا د کار په تماشه شو . | |
| باچا بوډا ته ډېر انعام ورکړ . | |
| یو بوډا د ونې یو بوټی کرلو . | ۱ |
| بوډا د هغه په پوښتنه لږ مسکی شو . | |
| باچا ملګرو سره په اس د ښکار د پاره روان وو . | |
| باچا د بوډا نه پوښتنه وکړه چې هغه ونه ولې کري . | |
| هغه د بوډا خوا ته راغی . | |
| باچا د بوډا په خبره ډېر حیران شو . | |

| پ ۲ | ۳۴ - ۳ |
|---|---|

## سوالونه او ځوابونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | بوډا يوه ورځ څه کول ؟ | | باچا بوډا له انعام ورکړ . |
| ۲ | بوډا ونه کوم ځاى کرله ؟ | | ته به د دې مېوه و نه خوړې شې . |
| ۳ | باچا ملګرو سره چېرته روان وو؟ | | باچا د ملګرو سره بوډا له ورغئ . |
| ۴ | بوډا لـه څوک ورغلل . | | زمونږ اولاد به د دې مېوه خوري . |
| ۵ | باچا د چا د کار په تماشه شو ؟ | | باچا ښکار ته روان وو . |
| ٦ | باچا بوډا ته څه وويـل ؟ | ۱ | بوډا يوه ورځ ونه کرله . |
| ۷ | بوډا باچا ته څه ځواب ورکړ ؟ | | باچا د بوډا د کار په تماشه شو . |
| ۸ | باچا بوډا ته څه ورکړه ؟ | | بوډا ونه کور سره نژدې کرله . |

| پ ۲ | ۳۴ - ۴ |
|---|---|

## ونې زمونږ ډېرې خوښې دي

**خلک** ونې کـري . ونې په خپله هم کيږي . ونې په اول کښې وړې وي او بيا غټې شي . ونې غټې څانګې لري . خلک د ځينو ونو مېوه خوري او سوري نه يې کښيني . د ونو پاڼې اول شنې وي . بيا څه وخت پس زيړې شي او په مزه مزه رژيږي . په ژمي کښې ډېرې ونې لغړې شي . خو ځينې ونې هر وخت تازه او شنې وي .

ونې د الله پاک يو ډېر لوى نعمت دى . په ونو هر ځاى ښه ښکاري . هر چا له په کار دي چې ونې وکري او ساتنه يې وکړي .

پ۲ | ۳۵ – ۲









پ۲ | ۳۵ - ۳

## اوبه موږ ته د ډېرو ذریعو نه په لاس راځي

**باران** خوړونه او سېلابونه راولي . د باران اوبه د اوبه خور د پاره هم په کار راځي . دا د ونو ، بوټو او پټو د پاره ډېره ګټه لري .

د **چینې** اوبه د غرونو نه راوزي . دا ډېرې رڼې او خوږې وي. چینې د واورې او باران د اوبو نه جوړېږي .

**سیند** کښې ډېرې اوبه وي . ډېرې چینې چې یو ځای شي نو سیند شي . د سیند په اوبو پټي هم اوبه کیږي .

**کوهي** ځینې کورونو او کلو کښې وي . د کوهي اوبه اوړي کښې یخې وي .

خلک د کوهي اوبه څښي او اوبه خور پرې هم کوي.

ټولې اوبه د الله پاک نعمت دی .

پ ۲ | ۳٦ - ۱



مښوکه ، سر ، سینه ، لکۍ ، وزر ، پنجه
هګۍ ، ځاله ، بچي

پ ۲ | ۳٦ - ۲

# د مرغانو ژوند

مرغان وېښته نه لري بڼې لري. ټول مرغان جوړه جوړه وي. يو نر وي او بل ښځه. مرغان په ونو غرونو او نورو ځايونو کښې ځالې جوړوي. دوی په ځالو کښې اوسي او هګۍ پکښې اچوي. د هګيو نه بچي راوباسي. مرغان دانې ، د بوټو پاڼې ، مېوې ، چنجي او نور شيان خوري. دوی بېل بېل رنګونه او اوازونه لري. د ځينو مرغانو رنګ ښايسته او اواز يې خوږ وي. مرغان په هوا کښې په وزرو الوزي او په ځمکه هم ګرځي. ځينې مرغان په ونو کښې کښيني.

مرغان د هر چا خوښ وي.

| پ ۲ | ۳۶ - ۳ |
|---|---|

# کومه جمله د کوم تصویر سره لګي؟

| | |
|---|---|
|  | |
|  | |
|  | |
|  | |
|  | |
|  | |
|  | |

۱- په اوبو کښې هم ګرځي .

۲- ټول بدن یې تور دی .

۳- د خلکو نه خبرې زده کوي .

۴- په اوچت اواز بانګ وایي .

۵- د غوا مېښو خوا کښې ډېره کښېني .

۶- ډېر خوږ اواز لري .

۷- ورکوټې ده او ډېر شور کوي.

| پ ۲ | ۳۶ - ۴ |
|---|---|

## زما ښارو



رنګ کړئ !
مښوکه : زېړه
لینګي او پنجې : زېړې
د سترګو چاپېره یوه زېړه دایره
سر : تور
نوربدن : خړ

ما یوه ښارو ساتلې ده . دا زما ډېره خوښه ده . زه دې سره ډېره مینه لرم . اوبه ، ډوډۍ او دانې ورته اچوم . چې بهر ته ځم نو اورې ته مې را ټوپ کړي . چې ډوډۍ خورم نو په کټ را سره کښېني . دا د کور نه بهر هم ځي خو بیا واپس راځي . ماسره د دې ډېره مینه ده .
زما ښارو ډېره ښایسته ده .

# یو قیدي او مرغان

یو سړی ډېره موده قید وو . یوه ورځ د قید نه خلاص شو . په یو بازار تېرېده . په یو دوکان یې نظر ولګېد . دلته ډېر مرغان په پنجرو کښې بند وو .
دی دې ته فکر یووړ او خپل حال ورته یاد شو . څه وخت پس د دوکان خوا ته ورغی .
دوکاندار نه یې پوښتنه وکړه : د دې مرغانو بیعه څو ده ؟ دوکاندار ورته بیعه وښودله .
دې سړي دغه ټول مرغان واخیستل . د پنجرو دروازې یې خلاصې کړې او ټول یې ازاد کړل .





| ۳ - ۳۷ | پ۲ |
|---|---|

| | |
|---|---|
| ## خالي ځايونه ډک کړئ! | |
| یو سړی د ______ نه را خلاص شو . | ازاد |
| دی په یو ______ تېرېدلو . | بېيعه |
| ناڅاپه يې په يو ______ نظر ولګېد . | مرغان |
| په دوکان کښې ______ په پنجرو کښې بند وو . | حال |
| سړي ته خپل ______ ور په ياد شو . | دوکان |
| دوکاندار نه يې د مرغانو ______ وپوښتله . | جېپل |
| مرغان يې واخيستل او ټول يې ______ کړل . | بازار |

| ۴ - ۳۷ | پ۲ |
|---|---|



ځيني ماشومان د مرغانو ځالو ته خيژي - بچي ترې را کوزوي.
ځيني ماشومان مرغان په لينده ولي. ځيني ماشومان
مرغان نيسي . په پنجره کښې يې بندوي .
ماشومانو ! تاسو چېرې هم دا کار ونه‌کړئ . مه د
مرغانو بچي نيسئ . مه يې په لينده ولئ . مه ئې
په پنجره کښې بندوئ . څنګه چې مونږ د الله پاک
پيدايښت يو ، دغسې يې مرغان هم دي .

| پ ۲ | ۳۸ - ۲ |
|---|---|

## نا مناسب لفظ چرخي کړئ او يو مناسب لفظ وليکئ!

مار - ~~زانګو~~ - مېز - مچ - مخ - ملخ

ټال - جال - بال - ژبه - کال - ________

سيند - سنن - ګډ - سپي - سترګه - ________

ليکل - بس - زانګل - تلل - لوستل - ________

تنور - برش - توپ - تصوير - شين - ________

طوطي - حلوايي - سړي - توت - دي - ________

تور - ښځه - سپين - زيړ - خړ - ________

امسا - غوا - فقير - سبا - بابا - ________

| پ ۲ | ۳۸ - ۳ |
|---|---|

## تصوير سره مناسب لفظ يوځای کړئ!














| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | هلک منه څنګه خوري ؟ | | مېوې به وينځو . | پ ۲ ‏۳۹ – ۲ |
| ۲ | هغه ولې ناجوړه دی ؟ | | اوس ناولې منه نه خوري . | |
| ۳ | د هلک مور څه کوي ؟ | | چې بيا ناجوړه نه شي . | |
| ۴ | ډاکټر څه کوي ؟ | | چې صفا **شيان** خورو . | |
| ۵ | اوس هلک څه چل کوي ؟ | | ډاکټر هلک ته دوايي ليکي. | |
| ۶ | هغه منه ولې وينځي؟ | | هغه د هلک تبه ګوري . | |
| ۷ | په مېوو به څه کوو ؟ | ۱ | هلک منه هم‌دغسې خوري. | |
| ۸ | صحت څنګه ښه کېدی شي؟ | | ځکه چې ناولې منه خوري. | |

پ ۲ ‏۳۹ – ۳

# بې پروا هلک

| | |
|---|---|
| ناولې | يو هلک ناولې منه وخوره . |
| ناجوړه | |
| ډاکټر | |
| دوايي | |
| جوړ | |
| خيال | |

| پ۲ | ۴۰ – ۱ |
|---|---|

# دا څه دي ؟

| | | |
|---|---|---|
| موږ ته ډېر څه ښايي خو خبرې نه کوي. | پښې نه لري خو ګرځېدی شي. | ډېر غاښونه لري خو ډوډۍ نه شي خوړی. |
| | | |













| | | |
|---|---|---|
| شپه او ورځ ګرځي خو خپل ځای نه پرېږدي. | ډېر اوازونه ترې راوزي خو دننه په کښې هېڅوک نه وي. | پورته ښکته ټوپونه وهي خو پښې نه لري. |
| | | |

ایا تاسو هم داسې دوښې جوړولی شئ ؟

پ۲ | ۴۰ - ۲

تصویرونو ته په غور سره وګورئ او را په یاد کړئ !




پ۲ | ۴۰ - ۳

غیب حرف معلوم کړئ او لفظ لاندې ولیکئ !

ک   ف ق ی _   _ ا ل ق

ا   ک ②   ز ④

_ ن ګ ①   ش   ا   ځ

ا   ن   ن

ګ ③   چ

_ و ک س   ا ⑤

_ ر ا ن

و

| د | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ |
|---|---|---|---|---|
| | | | | |

# ځومره چې زور وي هومره حرکت وي



ځومره په زوره چې ماشوم موټر
ټېله کوي هومره به لرې ځي .



ځومره چې هلک په زوره توپ له
لګته ورکوي هومره به لرې ځي .



ځومره په زوره چې هلک کاڼی
ولي هومره به لرې ځي .



ځومره چې ځوک په زوره لینده
راکاږي هومره به کاڼی لرې ځي .



یو غوبی درونډ ګاډی نه شي
راښکلی خو دوه غوایان یې راښکلی شي .



ځومره چې ځوک په زوره سایکل
چلوي هومره به تېز وي .

زور - حرکت - دیکه - هومره - کاڼی
راکاږي - غوبی - راښکلی - لګته .



# غوټۍ او کریم د موټرو څخلولو لوبه کوي!

غوټۍ او کریم خور او ورور دي. غوټۍ وړه او کریم لوی دی. دواړه د کور په انګړ کښې د موټرو څخلولو لوبه کوي. مور پلار هم ورته ګوري. د غوټۍ موټر شین او د کریم سور دی. د هریو دا خیال دی چې زما موټر لرې تللی شي.

دواړه وایي راځئ په یو ځای ټېله ورکړو چې د چا موټر لرې ځي. ورور او خور خپلې موټرې په یوه کرښه ودروي او په یو ځای ټېله ورکوي. د کریم موټر لرې ځي خو د غوټۍ موټر دومره لرې نه ځي. غوټۍ خپه کیږي. کریم ته وایي چې زما موټر خراب او ستا ښه دی. کریم ورته وایي چې خپل موټر دې ماله راکړه او زما ته واخله. دواړه سره موټرې بدلوي. دغه لوبه بیا کوي. دا ځل هم د کریم موټر د غوټۍ د موټر نه لرې ځي. کریم خوشحاله او غوټۍ ډېره خپه کیږي. پلار یې ورته خاندي او غوټۍ ته وایي: «لورې! مه خپه کیږه. یو موټر هم خراب نه دی. ته وړه یې او موټر له د کریم په شان په زوره ټېله نه شې ورکولی، ځکه چې

| پ ۲ | ۴۲ - ۱ |
|---|---|

املا - اس - استاذ - انسان - ام - اره
اوس - الو - امامتي - انعام - امسا - اول
استنجا - اور - اوږه - احتياط - اوښ - اوبه

| ا | اس | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ا | انعام | | | | | |
| ا | اوښ | | | | | |

| پ ۲ | ۴۲ - ۲ |
|---|---|

## د الف (ا) مختلف اوازونه

| | |
|---|---|
| اکرم املا ليکي. | انسان ارام ته ضرورت لري. |
| استاذ انعام ورکوي. | استاذ اکرم ته اواز کوي. |
| زه اوس ام خورم. | الله پاک د انسان مدد کوي. |
| اسلم ويده دی. | ام په اوړي کښې پخيږي. |
| اس اوبه څښي. | پلوشه اوږه اغږي. |
| املوک او انګور خواږه دي. | مور اوس تنور اچوي. |
| امنه او اکرام وږي دي. | استاذ او انعام خبرې کوي. |

| ۳ - ۴۲ | پ ۲ |
|---|---|

زما مور څه کولی شي ؟ زما پلار څه کولی شي ؟





زما مور جامې ګنډلی شي . زما پلار ______





زما مور ډوډۍ پخولی شي . زما پلار ______

| ۴ - ۴۲ | پ ۲ |
|---|---|

## خلک څه کولی او څه نه شي کولی ؟

۱- زه خط لیکلی شم . زما وړوکی ورور یې نه شي لیکلی .

۲- ترکاڼ مېز جوړولی شي . نه یې نه ______ جوړولی .

۳- موچي څپلۍ ګنډلی شي . مونږ یې نه ______ ګنډلی .

۴- هلکان فټبال کولی شي . وړوکي ماشومان یې نه ______ کولی .

۵- پېیشو ونې ته ختلی شي . سپی ونې ته نه ______ ختلی .

۶- اس تېزه منډه وهلی شي . مېښه یې نه ______ وهلی .

۷- دوی شمېر کولی شي . زه یې نه ______ کولی .

۸- غوایان درونده ګاډۍ راښکلی شي . ناسو یې نه ______ راښکلی .

خلک هر څه نه شي کولی !

| پ ۲ | ۴۳-۲ |
|---|---|

# بې پروا په سړک مه تېرېږئ !

نازو د کور نه په منډه راووتله . بې پروا د سړک بلې غاړې ته پورې وتله . په سړک ټانګه روانه وه . ټانګې والا ټانګه دومره زر نه شوه ودرولی . نازو د ټانګې سره وجنګېده . سر او مخ يې خوږ شول . ښه وه چې ټانګې د لاندې نه شوه او د مرګ نه بچ شوه .
ماشومانو !
د کور نه په منډه بهر مه وځئ هسې نه چې د څه سره ډغره وخورئ او خوږ شئ . د سړک ښي او کڼ اړخ ته ګورئ . که څه وي نو لږ ودرېږئ چې هغه تېر شي نو بيا ځئ .

| پ ۲ | ۴۳ - ۱ |
|---|---|



پ ۲ | ۴۳ - ۳













# احتیاط کوئ!













- [ ] د سرک هر اړخ ته ښه ګورئ بیا بلې غاړې ته ځئ .
- [ ] د برق په شیانو کښې ګوتې مه وهئ هسې نه چې ومو نیسي.
- [ ] اور له نژدې مه ورځئ هسې نه چې پرې وسوزئ .
- [ ] چې لامبو نه درځي مه لامبئ هسې نه چې ډوب شئ .
- [ ] ښاروو له نژدې مه ورځئ هسې نه چې لګته یا ډغره درکړي.
- [ ] په سوړو کښې ګوتې مه وهئ هسې نه چې لړم یا مار مو وخوري.
- [ ] د چاقو یا ستنې سره لوبې مه کوئ هسې نه چې پرې غوښ شئ.
- [ ] په خپله خوښه دوایي یا بل شی مه استعمالوئ، نقصان به درکړي.

پ ۲ | ۴۴ – ۱

# سوالونه او ځوابونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | یو ښار کښې څوک اوسېدل ؟ | | هلک یو ډېر لوی عالم او بزرګ شو. |
| ۲ | هلک د څه سره مینه لرله ؟ | | د ده نوم شیخ عبدالقادرجیلاني رح وو. |
| ۳ | هلک ته مور څه نصیحت وکړ ؟ | | د بدو کارونو نه یې توبه ووېستله. |
| ۴ | قافلې ته څه پیښ شول ؟ | | سردار د هلک کمیس وکوت. |
| ۵ | سردار هلک سره څه وکړل ؟ | | هلک د علم سره مینه لرله. |
| ۶ | د هلک د خبرو نه پس سردار څه وکړل؟ | | هېڅ کله دروغ مه وایه. |
| ۷ | اخر کښې د هلک نه څه جوړ شول؟ | ۱ | یو هلک او د هغه مور اوسېدل. |
| ۸ | د ده نوم څه وو ؟ | | قافله غلو لوټ کړه. |

پ۲ | ۴۴ – ۲

## جملو ته د ترتیب مطابق شمېره ورکړئ !

[ ] په سردار د هلک خبرې ډېر اثر وکړ.

[ ] په لاره کښې غلو قافله لوټ کړه .

[ ] د هلک نوم شیخ عبدالقادر جیلاني رح دی .

[۱] یو هلک بل ښار ته د علم حاصلولو دپاره د تلو اراده وکړه .

[ ] د هلک نه یو لوی عالم او بزرګ جوړ شو.

[ ] سردار د هلک نه د رښتیا ویلو وجه وپوښتله .

[ ] سردار د بدو کارونو نه توبه ووېسته .

[ ] مور ورته نصیحت وکړ چې هېڅ کله دروغ مه وایه .

| بنه کارونه | بد کارونه (پ۲ ۴۴-۳) |
| --- | --- |
| ________ | ① دروغ ویل |
| ________ | ② ظلم کول |
| ________ | ③ سپک نظر کول |
| ________ | ④ بې ادبي کول |
| ________ | ⑤ غلا کول |
| ________ | ⑥ ازار اخیستل |

○ ثواب ګټل ○ غلا نه کول ○ دروند نظر کول
○ رحم کول ○ رښتیا ویل ○ ادب کول

پ۲ ۴۴-۴

# خالي ځایونه ډک کړئ!

استاذ ماشومانو ته وویل:

د مشرانو بې ادبي مه کوئ [ ] یې کوئ!

په چا [ ] مه کوئ رحم پرې کوئ!

د چا نه [ ] مه اخلئ همېشه ثواب ګټئ!

چاته سپک نظر مه کوئ [ ] نظر کوئ!

هېڅکله دروغ مه وایئ همېشه [ ] وایئ!

غلا کول بد کار دی [ ] مه کوئ!

| پ ۲ | ۴۵ - ۱ |
|---|---|

## غوټۍ او کریم د هرچا خوښ دي

غوټۍ او کریم په یو وړوکي کلي کښې اوسي . دواړه خور او ورور دي. دوی د کلي د خلکو سره ښه ژوند تېروي .
د هرچا خیال ساتي . د هېچا سره جنګ نه کوي . د خپلو هم صنفیانو سره مینه کوي . که ناجوړه شي پوښتنې له یې ورځي . د ګاونډیانو سره ښه سلوک کوي . که ضرورت شي کار ورله کوي . د مشرانو ادب کوي . د هغوی خبرو ته غوږ نیسي . مېلمنو ته ستړي مشي کوي او عزت یې کوي.
د مور پلار ډېر ادب کوي . د هغوی خبره مني .
ځان صفا ساتي .
دا ټول هغه کارونه دي چې د خدای (ج) او پیغمبر (ص) خوښ دي .
تاسو هم داسې ژوند تېروئ!

| پ ۲ | ۴۵ - ۲ |
|---|---|

## ماشومانو!

دا خبرې ښې دي ډېرې
درنه نه شي چېرې هېرې

د مور پلار کوئ ادب — منئ حکم د خپل رب
کړئ خدمت د استاذانو — هم عزت د مشرانو
تل مدد د ګاونډي کړئ — هم د خپل، هم د پردي کړئ
هم صنفیانو سره ښه کړئ — ورسره چېرې بد مه کړئ
پاک صفا ساتئ خپل ځان — یئ به خوښ د هر انسان

ستاسو ژوند به وي تل ښکلی
وي ښایسته به مو کور کلی

| پ ۲ | ۴۵ - ۳ |
|---|---|



## دا
## بد کارونه دي!









(۱) مخه کښې خزلې غورځول. (۲) ونې بوټې پرېکول. (۳) په حیواناتو ظلم کول.

(۴) روان ګاډي په کاڼو ویشتل. (۵) په روانو ګاډو پورې نښتل.

| پ ۲ | ۴۵ - ۴ |
|---|---|

## دا ښه کارونه دي!












ټانګه - کټ - مېز - الماری - ټمبې - چوکاټ - کړکی

يوې - د لور، رمبي او تبر لاستي




رنده - اره - ترښځ - برمه - څټک - سوان - بازو

بانس - د لرګي تختې - د ونې تنه - مېخونه

پ ۲ | ۴۶ - ۳

کومه جمله د کوم تصویر سره لګي ؟



۱ ترکاڼ په برمه په لرګي کښې سوری کوي.



۲ ترکاڼ په رنده د کټ پښه رنده کوي.



۳ ترکاڼ په اره د لرګي تخته غوځوي.



۴ ترکاڼ په سوان د مېز پښه سوان کوي.



۵ ترکاڼ په ترښځ د تبر لاستی جوړوي.



۶ ترکاڼ په څټک په مېز مېخونه ټک وهي.

پ ۲ | ۴۶ - ۴

## زمونږ د کلي ترکاڼ

زمونږ د کلي ترکاڼ همېشه د خلکو په کار راځي. دی د لرګو نه د خلکو د ضرورت شیان جوړوي.
د کورونو د ابادۍ دپاره چوکاټونه، تمبې، الماریۍ او کړکۍ تیاروي. د کور د استعمال دپاره مېزونه او کټونه هم جوړوي. د بزګر او مزدور دپاره یوې، لور، رمبی او تبر تیاروي. ټانګې، ګاډي او نور ډېر شیان هم جوړوي.
د ترکاڼ ځینې اوزار رنده، ترښځ، اره، برمه او څټک دي. دا د ده دوکان کښې هر وخت پراته وي او کار ترې اخلي.
زمونږ د کلي ترکاڼ ته خلک په درونډ نظر ګوري.

پ ۲ | ۴۷ - ۱

ټانګه - رمبی - لور - چاړه - تبر - سسپار - یوم - ببلچه

پ ۲ | ۴۷ - ۲



پلک - څټک - امبور - بنی - پانه

بټۍ - سندان - سوان - سیخونه

| پ۲ | ۴۷ - ۳ |
|---|---|

## کومه جمله د کوم تصویر سره لګي ؟



۱ ښښ په بټۍ کښې په بټۍ اوسپنه نودوي .

۲ ښښ په پانه اوسپنه پرېکوي .

۳ ښښ په ځنک سیخونه سموي .

۴ ښښ په سندان اوسپنه په پلک وهي .

۵ ښښ په امبور اوسپنه د بټۍ نه راوباسي.

۶ ښښ په سوان اوسپنه سوان کوي .

| پ۲ | ۴۷ - ۴ |
|---|---|










ډاکټره د ناروغه ښځو علاج کوي . هغه خپل دوکان او هم روغتون کښې کار کوي .
استاذانې جینکو او ماشومانو ته سبق ښايي او په ښوونځیو کښې کار کوي . دستکاري هم د ښځو یو ډېر ښه کسب دی . دوی په جامو او رختونو بوټې او ګلونه اچوي.
ښځې درزي توب هم کوي . دوی هر قسم جامې ګنډي .



















○ ازاد اوسېدونکي حيوانات

● ساتل‌کېدونکي حيوانات

فیل‌مرغ - چیندخه - چنچنه - زمری - پتنګ - غویی

شادو - بطه - مچۍ - کشپ - چینجی - باز

کوتره - مږه - بزه - سپږه - ماهی



















○ازاد اوسېدونکي حیوانات

●ساتل کېدونکي حیوانات

طاوس - ټپوس - سپی - ګیدړ - مېښه - بلبله

ماشی - مېږی - اوښکی - ګونګټه - سویه - زرکه

ورږه - فیل - غنه - ملخ - اوښ

| پ۲ | ۴۸ - ۳ |
|---|---|

# د متعلقه حیواناتو نومونه ولیکئ !

| |
|---|
| دا حیوانات هګۍ اچوي: |
| دا حیوانات بچي راوړي: |
| دا حیوانات نور حیوانات خوري: |
| دا حیوانات بوټي خوري: |
| دا حیوانات بڼې لري: |
| دا حیوانات وېښته لري: |
| دا حیوانات خلکو ته ضرر رسوي: |
| دا حیوانات په هوا کښې الوتلی شي: |
| دا حیوانات په اوبو کښې اوسیږي: |
| په ځمکه اوسېدونکي حیوانات - دا ختلی شي: |
| - دا ښوئیږي: |
| - دا تېزه منډه وهلی شي: |
| - دا په عام ډول ورو ورو ځي: |

| پ۲ | ۴۸ - ۴ |
|---|---|

## دا حیوانات څنګه اوازونه لري ؟

| | | |
|---|---|---|
| ① پیشو په کور کښې | ◯ ټېغ ټېغ | کوي |
| ② کارغه په هوا کښې | ◯ چڼ چڼ | کوي |
| ③ چیندخ په اوبو کښې | ◯ بڼ بڼ | کوي |
| ④ چڼچڼه په ونه کښې | ◯ غپ غپ | کوي |
| ⑤ زمری په ځنګل کښې | ① میاو میاو | کوي |
| ⑥ مچ په هوا کښې | ◯ کاغ کاغ | کوي |
| ⑦ سپی هر وخت | ◯ غړمبا | کوي |

| پ ۲ | ۴۸ - ۵ |
|---|---|

## مشهور غرڅني حیوانات




① زانه یو صحرایي مرغه دی چې په سیلونو کښې اوچت پرواز کوي. ② غرڅنۍ بزه د کورنۍ بزې نه غټه وي. اوږده کاږه ښکرونه لري. ③ غرڅنی ګډ هم غټ او مضبوط وي او اوږده تاو شوي ښکرونه لري. ④ د واورو پړانګ په واورو پټ غرونو کښې وي. اوږده لکۍ ، غښتلی او بړګ وجود لري.
دا زمونږ د وطن مشهور غرڅني حیوانات دي. دې نه علاوه نور هم شته.
دا حیوانات دې خلک نه وژني او حفاظت دې يې کوي !

# حیوانات مونږ سره مدد کوي












______ مږې نیسي. ______ یوې راکاږي.

______ بار وړي. ______ غوبل کوي.

______ ګاډی راکاږي. ______ ګاډی چلوي.

______ څوکیداري کوي. خلک په ______ سو ریږي.

| پ۲ | ۴۹ - ۲ |
|---|---|

## د حيواناتو نه ډېر څه په لاس راځي

| مچۍ | | |
|---|---|---|
| بزه | | |
| ګډه | | |
| چرګه | | |
| غوا | | |

| پ۲ | ۴۹ - ۳ |
|---|---|

## د حيواناتو فايدې

حيوانات ډېرې فايدې لري . دوی همېشه زموږ په کار راځي .
په غوايانو بزګر يوې کوي . خلک د غوا ، مېښې ، ګډې او
بزې شدې ښخبي او غوښه يې خوري . د دوی څرمنې
هم په کار راځي . د ګډو د وړيو نه جامې ، خولۍ
او نور ډېر شيان جوړيږي . خلک په اس سورلي
کوي او ښانګه پرې راکاږي . په خر بار وړي .
سپی د کور او د حيواناتو څوکيداري کوي . نور
حيوانات هم شته چې فايدې لري .
کورني حيوانات او ځايونه يې پاک ساتل په کار دي .

# د ټګ راټګ وسيلې





















بنيادم - بحري جهاز - بس - ګاډی - حيوانات

سکوټر - ټرک - اورګاډی - سايکل - رکشا - جاله

الوتکه - موټرسايکل - ټانګه - موټر - کشتۍ

پ۲ | ۵۰ - ۲

| | |
|---|---|
| ______ د ______ نه تېز ځي . | |
| ______ سورلۍ او ______ سامان وړي. | |
| ______ درې پايې او ______ څلور پايې لري. | |
| ______ په اوبو او<br>______ په هوا کښې ځي . | |
| ______ د ______ نه ورو ځي . | |
| ______ د ______ نه تېزه منډه وهي. | |

پ۲ | ۵۰ - ۳

# د تګ راتګ د وسيلو وده

ړومبی د تګ راتګ وسيلې نه وې . خلک به د يو ځای نه بل ځای ته په پښو تلل . بارونه به يې په خپله وړل . بيا يې دغه کار په حيواناتو شروع کړ . د زياتې اسانتيا دپاره بنيادمو نورې وسيلې هم جوړې کړې لکه سايکل، ګاډی ، موټر ، الوتکه او داسې نور .

د دوی په مدد د خلکو منځ کښې تګ راتګ زيات شو.

د کلو او ښارونو ترمنځه تلل راتلل اسان شول.

د خلکو ژوند د مخکښې نه ډېر ښه شو .

انسان اوس هم د نورو وسيلو په تکل کښې دی.

پ ۲ | ۵۱ – ۱

ځان - ضعیف - ذریعه - زمری - ظلم
ضرور - زرین - ځیني - ظالم - زوی - حیوانات
ذخیره - ظروف - زور - ذلیل - ځای - ذمه

| ز | ذ | ځ | ض | ظ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| | | | | |

پ ۲ | ۵۱ – ۲

د سر هم‌اوازه حروف لرونکي الفاظ متعلقه ځای کښي ولیکئ!

ثواب - طوطي
ږیره - صحت
تور - ګڅ
ثنا - سپین
تخم - ږمنځ
صفت - ګوډي
طاوس - سبا

| ګ | ږ | ت | ط |
| --- | --- | --- | --- |
| | | | |

| س | ص | ث |
| --- | --- | --- |
| | | |

طوطي شين رنګ لري.

ظلم ښه نه دی.

ثنا خدایٔ لره ده.

زلمی ښه هلک دی.

ګډه واښه خوري.

ګل په باغ کښې ښه ښکاري.

زرین ښه هلک دی.

توت یوه ښایسته ونه ده.

ضعیف سړی ورو ورو ځي.

سهار هوا ښه وي.

ږیره په مخ ښه ښکاري.

طاوس یو ښکلی مرغه دی.

سایکل د چلولو دپاره وي.

ځان په هرچا ګران وي.

ذخیره کښې ډېر بوټي وي.

ځنګل ډېرې ونې لري.

صفا جامې ښې وي.

ټله د تول دپاره وي.

د سر هم‌اوازه حروف لرونکي الفاظ متعلقه ځای کښې ولیکئ!

| ز | س | ګ | ټ |
|---|---|---|---|
| | | | |

| پ۲ | ۵۲ — ۱ |
|---|---|





















اسلم او بابا په روژه کښې هره شپه بام ته ختل. سپوږمۍ به یې کتله . دوی به لیدل چې هره شپه سپوږمۍ خپل شکل او ځای بدلوي.

| پ۲ | ۵۲ — ۲ |
|---|---|

## د روژې میاشت او سپوږمۍ

| | | | |
|---|---|---|---|
| دا سپوږمۍ د یوویشت ورځو ده. | |  | ۱ |
| دا د اوومې شپې سپوږمۍ ده . | |  | ۲ |
| دا د څوارلسمې سپوږمۍ ده . | |  | ۳ |
| دا د لومړۍ ورځې میاشت ده. | ۱ |  | ۴ |
| دا بله نوې میاشت ده. | |  | ۵ |
| دا د اته ویشتمې ورځې ده . | | | ٦ |
| یوه شپه میاشت نه وي . | |  | ۷ |

| پ۲ | ۲۵ - ۳ |
|---|---|

# د روژې میاشت

د روژې میاشت په کال کښې یو ځل راځي. لویان روژې نیسي ماشومان یې نه نیسي. د هرې ورځې د روژې شروع د پېشمني نه کېږي. په دې وخت کښې روژتیان خوراک څښاک کوي. سهار چې ملا بانګ ووایي نو د ماښام تر بانګه نه څه خوري او نه څه څښي. د ماښام د بانګ نه مخکښې په ډېره مینه د روژه ماتي تیارۍ کوي. قسم قسم شیان خوري. د ماسخوتن د لمانځه سره د تراویح لمونځ هم کوي. د قرآن پاک ختمونه کوي او د خدایٌ نه د خپلو ګناهونو معافي غواړي. دا ډېره بختوره میاشت ده. په دې کښې قرآن هم نازل شوی دی.

| پ۲ | ۲۵ - ۴ |
|---|---|

الات امبور مور جارو ولې لو سودا لور نارو بوډا ښارو خوبن پلو ښوک وادہ کوي



| کوې | مور | امبور | پلو |
|---|---|---|---|
| | | | |

# وړوکی اختر

چې ماښام شو نو هر چا اسمان ته کتل. په دې کښې چا چغه کړه: «هغه ده میاشت! هغه ده میاشت!» بابا اسلم په غېږ کښې اوچت کړ. ورته یې وویل: «وګوره! هغه ده نوې میاشت. که خیر وي سباته اختر دی.»

اسلم ډېر خوشحاله وو. د خوشحالۍ نه ورته د شپې خوب نه ورته. سهار چې مور د چای دپاره راپاڅولو نو هغه ویښ شوی وو. ټولو میچې او د چای سره پراټې وخوړلې.

هرڅوک خوشحاله وو. د چای څښلو نه پس اسلم نوې جامې واغوستې. بېرون ته ووت چې خپلو ملګرو ته یې وښایي. ټولو ماشومانو ښایسته جامې اغوستې وې.

څه وخت پس بابا او پلار یې جومات ته د اختر د لمانځه دپاره ولاړل. اسلم د ماشومانو سره په لوبو شو.

ګاونډیانو او خپلو خپلوانو یو بل ته د اختر مبارکي ورکړه. ښځو، سړیو او ماشومانو ښایسته نوې جامې اغوستې وې. غرمه ماشومان د ډوډۍ خوړلو دپاره کور ته راوبللی شول.

د ډوډۍ خوړلو نه پس بابا اسلم ته د مېلې د پاره پیسې ورکړې او د نورو ماشومانو سره ولاړ. مېله کښې یې سیل وکړ، مټهایانې او د لوبو شیان یې واخیستل.

اسلم چې ماښام کور ته راغی نو وې یې وویل:

«د اختر ورځ یوه ډېره ښه ورځ وي. زما به هېڅکله هېره نه شي». مور پلار او بابا یې مسکي شول. بابا یې وویل: «دا د خدایﷻ لوی نعمت دی. مسلمانان هر کال د اختر خوشحالي کوي.»

پ۲ | ۵۳ - ۲

## د قصې کومه جمله د تصویر سره لګې ؟









پ ۲ | ۵۳ - ۳

# د اختر ورځ

ټوله دنیا ترې نه خبر ده
ملګرو! ورځ نن د اختر ده

خوله زمونږ ډکه د خندا ده — د ټولو ورځو نه ښه دا ده
ځای په ځای کلوکښې مېلې دي — راځئ! چې ورشو تماشې دي
اخلو د لوبو به څيزونه — هم پوکڼۍ، هم موټرونه
سهار خوړلې مونږ مېچې دي — هم مټايانې، پراټې دي
اغوستې مونږ نوې جامې دي — وايي هريو چې زما ښې دي

دنيا خوشحاله سراسر ده
ملګرو! ورځ نن د اختر ده

# موږ په ځمکه ژوند کوو

ځمکه ډېره لويه ده. په دې کښې ډېر خلک اوسي. د ځمکې مخ هر چېرته يوشان نه دی. چېرته لوی او واړه غرونه دي، چېرته ژورې او پراخه واديانې دي. ځينو ځايونو کښې لوی او واړه سيندونه بهيږي. سيندونه سره يوځای کيږي. په اخر کښې بحر ته لويږي. ځمکه ډېره ښکلې ده. دا خدای (ج) پيدا کړې ده.

زموږ د اوسېدو اصلي ځای افغانستان دی.















# د ځمکې نه کار اخيستل

خدای پاک ځمکه پيدا کړه. په ځمکه يې مختلف نعمتونه پيدا کړل. انسان ته يې طاقت ورکړ چې کار وکړي او ځان ته روزي پيدا کړي. انسان په ځمکه پټي، لوی او واړه نهرونه او لښتي جوړ کړل. پټو کښې يې مختلف شيان وکرل. کلي، ښارونه، سړکونه او پلونه يې جوړ کړل. تاسو خپل خواوشا ته وګورئ چې خدای پاک څومره نعمتونه درکړي او تاسو څنګه ترې کار واخيست!

# زموږ هېواد

د پلار نیکه او نورو مشرانو د پیدایښت او اوسېدو اصلي ځای ته وطن یا هېواد وايي . هېواد د یوې لوېې کورنۍ مثال لري چې خلک یې پکښې په سوله او ارامۍ ژوند کوي.
زموږ د ګران هېواد نوم افغانستان دی . په دې کښې افغانان اوسي .
زموږ هېواد ډېر ښایسته دی ، لوړ لوړ غرونه او شنې شنې درې لري . لوړ غرونه یې همېشه په واورو پټ وي. ځینې یې ګڼ ګڼ ځنګلونه هم لري . لوی لوی سیندونه ترې سرچینه نیسي چې ځمکې او باغونه خړوبوي. د څښاک دپاره یې اوبه هم استعمالیږي . مشهور سیندونه یې د امو، هلمند او کنړ سیندونه دي . پایتخت یې د کابل ښار دی . نور مشهور ښارونه یې هرات ، کندهار، غزنی، مزارشریف او جلال اباد دي .
خو نن موږ پخپل ښکلي هېواد کښې نه یو . د سولې، ازادۍ او اسلام دښمن یو خارجي طاقت یوولس کاله د مخه زموږ په هېواد کښې وسله واله مداخله وکړه. لکونو افغانانو د خدای ج د رضا او د ازادۍ د حاصلولو دپاره نورو هېوادو ته هجرت وکړ . لوېې برخې یې اسلامي هېواد پاکستان ته پناه راوړه . دلته د افغانانو هرډول انساني او اسلامي مرسته کیږي . دې مجاهدو او په ازادۍ مینو خلکو د دښمن سره وسله وال جهاد وکړ او د ماتې سره یې مخامخ کړ .
موږ په خپل هېواد کښې کفر او الحاد نه منو ، غواړو چې خپل هېواد ته لاړ شو او هلته د مسلمان او ازاد افغان پحیث په سوله او امن کښې ژوند وکړو .

# که د وطن په باب معلومات لرئ نو ولیکئ !

۱- زموږ د هیواد څه نوم دی ؟

۲- دلته څوک اوسي ؟

۳- زموږ هیواد څه څه لري ؟

۴- د افغانستان پایتخت څه نومیږي ؟

۵- زموږ د هیواد مشهور سیندونه کوم دي ؟

٦- د افغانستان مشهور ښارونه کوم دي ؟

۷- اوس موږ په کوم هیواد کښې یو ؟

۸- زموږ په هیواد کښې څو کاله مخکښې مداخله وشوه ؟

۹- موږ په خپل هیواد کښې څه نه منو ؟

امو، هلمند، کنړ - پاکستان - کابل - یوولس کاله - افغانستان - هرات، کندهار، غزنی، مزارشریف، جلال اباد - کفر او الحاد - غرونه، دریې، ځنګلونه، سیندونه - افغانان

# یو مهاجر هلک

زلمی یو ماشوم هلک دی . دی په یو کیمپ کښې اوسي .
یوه ورځ سهار وختي د خپل پلار سره د خپلې خېمې نه
بېرون ووت . د کیمپ د نورو خېمو په تماشه شو . خپل
کلی يې را په زړه کېده . دی ډېر خپه وو . ځکه چې نه
هغه د لوبو ملګري وو ، نه هغه ځایونه چې ده به پکښې
لوبې کولې . د کورونو په ځای ټولې خېمې وې . ده ته
دا هرڅه د خوب لیدل وو .

د پلار نه يې پوښتنه وکړه : "دا دا جانه ! دا ټول خلک هم
زمونږ په شان مهاجر دي ؟" پلار يې جواب ورکړ : هو بچیه!
دا هم زمونږ په شان مهاجر او زمونږ د وطن دي . خو
زمونږ په وطن کښې یو خارجي طاقت مداخله وکړه . سوله
او امن يې له منځه یووړ . ډېر ماشومان يې یتیمان کړل ،
ډېرې ښځې يې کونډې کړې او ډېر خلک يې شهیدان کړل .
مونږ ټولو اسلامي هېواد پاکستان ته پناه راوړه . دلته د
مونږ سره هر قسم مرسته کیږي . خو مونږ پخپله هم
د مځکښې په شان کار کوو ، ځان او اولاد ته د دې لارې
روزي پیدا کوو .

بیا يې د پلار نه پوښتنه وکړه چې بیا به خپل وطن ته
کله ځو . پلار يې ووېل چې بچیه ! کله چې د دښمنانو
لاس لنډ شي ، مجاهدین مکملې کامیابۍ ته ورسیږي او
یو اسلامي حکومت جوړ شي نو بیا به مونږ بېرته خپل
وطن ته ځو . مجاهدین ورځ په ورځ برۍ ترلاسه کوي .
که خدایؐ کول کامیابي نژدې ده . مونږ به زر بېرته وطن
ته لاړ شو .

# د ماشومانو ترانه

ملک مو په دنیا کښې مشهور افغانستان دی
خوش مو لکه ځان دی



دا د «غزنوي» هېواد
دا د «ابدالي» هېواد
دا د «افغاني» هېواد

دا هېواد د هريو مجاهد مرد ميدان دی
ځکه په مونږ ګران دی



دلته اوچت غرونه دي
دلته لوی سيندونه دي
دلته ډېر باغونه دي

خومره ډېر ښايسته دا د ګلونو ګلستان دی
دا د خدایؒ احسان دی



ننګ لرو، غيرت لرو
متو کښې طاقت لرو
شوق د شهادت لرو

وګوره که ګورې د دښمن خيرې ګرېوان دی
خومره په لړزان دی



خدایؒ دی مددګار زمونږ
نه بنديږي لار زمونږ
کيږي به هر کار زمونږ

مونږ مسلمانان يو زمونږ ټولو دا ايمان دی
فضل د سبحان دی



دا هلک یوه ______ او دوه ______
لري .
د ده دوه ______ او دوه یې
______ دي .
د هر لاس یې پنځه ______ دي .

پوزه
سترګه
لاس
پښه
ګوته



د کور په دې خلکو کښې
دوه ______ دوه ______ او څلور
______ دي .
په ماشومانو کښې دوه ______
او دوه ______ دي .

ښځه
سړی
هلک
جینۍ
ماشوم



په تصویر کښې ډېر حیوانات دي.
دلته درې ______ او څلور
______ دي .
دوه ______ او دوه
______ هم دي.

پیشو
چرګ
طوطي
غويي



دا یو بوټی دی.
دا ډېرې ______ لري .
دوه ______ او درې ______
لري .
د دې یوه ______ او ډېرې
______ دي.

پاڼه
مېوه
ګل
تنه
جرړه

| ۲ – ۵۷ | پ ۲ |
|---|---|

هره کرښه کښې د یو داسې بوټي نوم شته چې نه خوړلی کیږي . معلوم یې کړئ او د ☒ نښه پرې وکړئ !

| غنم | جوار | وابښه | پالک | ګازرې |
|---|---|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| بېنډۍ | ټېپر | لوبیا | ګل | ګنی |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| مالټه | تماکو | الوګان | رومي بانجان | ګوپي |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| مولۍ | بادرنګ | دال | کدو | د غز بوټی |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |

| ۳ – ۵۷ | پ ۲ |
|---|---|

# خوراک

خوراک د ژوند دپاره ضروري دی . ډوډۍ هرڅوک خوښوي . اول بزګر غنم کري . بیا یې ربېي . غنم اوړه کوي او ښځې اوړه اغږي او ډوډۍ په تنور پخوي . ښځې سبزي ، غوښه او نور شیان هم پخوي . دوی ډوډۍ د کور د خلکو دپاره تیاروي.

مونږ ټول د ډوډۍ خوړلو نه مخکښې لاسونه وینځو بیا ډوډۍ خورو . مونږ ډوډۍ په غاښونو ښه مبیده کوو . د ډوډۍ خوړلو نه پس هم لاسونه وینځو . ښځې ټول لوښي وینځي . په کار دہ چې د خوراک لوښي او ډوډۍ د مچانو نه بچ وساتو .

صفا خوراک د صحت دپاره ښه دی .

| پ ۲ | ۵۸ – ۲ |
|---|---|

هره کرښه کښې د یو داسې شي نوم دی چې اور نه اخلي. معلوم یې کړئ او د ☒ نښه پرې وکړئ!

| خولۍ | ګیلاس | کاغذ | وښښته | پنسل |
|---|---|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| سګرېټ | لرګی | اوبه | تېل | تختې |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| رخت | خرمن | هډوکی | خاوره | کتاب |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |
| پړتوګ | کاڼی | پاڼې | کټ | مېز |
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ☐ |

| پ ۲ | ۵۸ – ۳ |
|---|---|

## ځان د خطرو نه بچ وساته!

۱- په سرک د پورې وتلو نه مخکښې به څه کوې؟
۲- چې اور بلیږي ځان ترې څنګه ساتې؟
۳- د برق نه به ځان څنګه ساتې؟
۴- ایا ته پخپله خوښه دوایي خورې؟
۵- د لامبو سره تړلې خطرې درته معلومې دي؟

☐ د برق شیانو کښې به ګوتې نه وهم.

☐ هو! چې لامبو نه راځي نو په ژورو اویو کښې به ډوب شم.

☐ ۱ ښي او کڼ اړخ ته ګورم چې سرک خالي وي نو پورې وځم.

☐ نه! هله چې مور پلار او ډاکټر راته ووایي.

☐ ځان او نور شیان به ترې لرې ساتم.

# وړوکی اختر

د روژې نه پس اختر وي. چې مسلمانان پوره میاشت روژې ونیسي نو الله پاک ورته د دې په بدل کښې د اختر خوشحالي ورکوي. د اختر په کولو سره دوی د خدای ج شکر ادا کوي. دې اختر ته خلک وړوکی اختر وايي. په دې ورځ ماشومان سهار وختي پاځي. ځانونه صفا کوي. نوې او ښایسته جامې اغوندي. سهار میچې خوري. د چای سره پراټې او نور شیان خوري. مشران هم لامبي. بیا پاکې جامې اغوندي. د اختر د لمانځه دپاره جومات ته ځي. ځینې مشران، ماشومان هم د ځان سره جومات ته بیايي. هلته د کور کلي ډېر خلک یوځای کیږي. ملا د روژې او اختر په باب مسئلې کوي. خلک سمې لارې ته رابولي.

د لمونځ نه پس خلک یوبل ته غاړې وځي. په ډېره مینه ورته د اختر مبارکي ورکوي. د لمونځ نه پس خپلو کورونو ته راځي. بیا خپلو خپلوانو کره د اختر مبارکۍ ته ځي. یو بل ته مېلمستیا کوي. ګاونډیان یوبل ته د خوراک شیان استوي. غریبانو ته څوک جامې او څوک پیسې ورکوي چې دوی هم د اختر خوشحالۍ کښې شریک شي.

کلو کښې ځای په ځای مېلې وي. ماشومانو ته مور پلار د اختر پیسې ورکوي. دوی مېلې ته ځي. هلته په ټالونو او زانګوګانو زانګي. د لوبو او خوراک شیان اخلي. لوبې کوي. چې ستړي شي نو کور ته بېرته راځي.

ماشومانو! ایا ستاسو هم اختر خوښ دی؟

| ۲ – ۵۹ | پ ۲ | دا الفاظ لاندې متعلقه ځایونو کښې په ترتیب ولیکئ! |
|---|---|---|

غرمه پنجشنبه سه شنبه مازیګر منی
ژمی ماسپښین شنبه
سهار دوشنبه
جمعه سپرلی
ماسخوتن اوړی ماښام چارشنبه یکشنبه

| | |
|---|---|
| د ورځې وختونه | |
| د هفتې ورځې | |
| موسمونه | |

| ۳ – ۵۹ | پ ۲ | د الفاظو په اخر کښې حرف «ی» |
|---|---|---|

زلمی امامتي کوئ بجلۍ زړې
الوزي اغزيي
بندوئ الماړۍ ښځې چې بالښتې ځئ
رمبی باندي تبۍ خورئ موچي ښتۍ سپی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | | |

پ۲ | ۶۰ - ۲

# دا کوم حیوان دی؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | ډېر غټ وجود لري او په مزه مزه ځي. | | غوا، مېښه |
| ۲ | اوازېې اوچت دی او بار وړي. | | پیشو |
| ۳ | دوه ښکرونه لري او شدې کوي. | | ګډه |
| ۴ | ډېره تېزه منډه وهي. | | سپی |
| ۵ | بزګر یې په پټو کښې یوې کوي. | ۱ | فیل |
| ۶ | په ونه او دېوال په منډه خیژي. | | اس |
| ۷ | شدې کوي او وړې یې په کار راځي. | | خر |
| ۸ | ټوله شپه ویښ وي او پېره کوي. | | غویی |

پ۲ | ۶۰ - ۳

# دا څه دي؟

د ټولو ګاډو نه ډېر تېز دی خو په ځمکه نه ځي.

دا ______ ده .

ډېر اوږد دی او ډېر زیات شور کوي. ډېرې سورلۍ وړي خو هر ځای ته نه شي تلی.

دا ______ دی .

پخوا به هم استعمالېدو او اوس هم استعمالیږي. انجن نه لري او هر چېرته ځي.

دا ______ دی .

ډېر لوی دی. نه په ځمکه ځي او نه په هوا. ډېرو هېوادو ته سورلۍ او سامان وړي.

دا ______ دی .














غنم - انګور- جوار - ګني - انار

هندوانه - ګازرې - سابه - ګوپي - رومي بانجان












| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ طوطي | ۳ چونچښه | ۵ ښارو | ۷ بلبله |
| ۲ بطه | ۴ چرګ | ٦ کوتره | ۸ کارغه |

لاندې درې تصويرونه دي او هر تصوير سره څوا کښې يو خالي ځاى دى. په دغه خالي ځايونو کښې ورکړى شوي متعلقه تصويرونه جوړ کړئ.











| ٦ – ۴۰ | پ۲ |
|---|---|

_ ا ش و م

_ ا ز ی ګ ر

ل م _ ن ځ

_ ا د ه

_ ړ س ت ن

_ ا ز ا ر

پ ی ش _ ګ ا ن

ډ ر ا ی _ ر

ا م _ و ک

س ا ی ک _

برستن – پیشوګان – لمونځ – ماشوم – املوک
واده – ډرایور – سایکل – بازار – مازیګر

## کومه پیشو مږه نیسي ؟







# دعا

دا زموږه مدعا ده

دا زموږ ټولو دعا ده

خدایه پاکه! موږه لوی کړې
په هر څه باندې مو پوی کړې

علم، پوهه، عقل راکړې
ذهن، زړه زموږ رڼا کړې

هر مشکل زموږ اسان کړې
موږ د غم نه په امان کړې

موږه لوی داسې الله کړې
چې په کار مو د هرچا کړې

د اسمان کړې موږه ستوري
چې ټول خلک راته ګوري

موږ د دین په لار روان کړې

موږ صحیح مسلمانان کړې

| پ۲ | ۳۸ – ۴ |
|---|---|

دا الفاظ ولولئ ، وه‌یې شلوئ او په متعلقه تصویر یې ولیکوئ !

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غوا | نال | چرګ | تخته | حیوانات |
| ملخ | پیالۍ | مېښه | بس | مرغان |
| طوطي | کاسه | قلم | ګوپي | قلمونه |
| ام | لور | پلېټ | چاقو | الات |
| خر | ببېنډۍ | خودکار | ګلاب | سبزي |
| پنسل | رکشا | اره | ګازري | ګاډي |
| کبله | بلبل | ګډه | موټر | مېوه |
| ترښځ | منه | ګوپي | زمری | لوبني |